تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة في حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

تحریر و ترتیب

سید محمد ثواب

ابن سید الاخیل بابا صاحب

دوسرا حصہ

ناشر

مدرسہ حدیقۃ الاحناف

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# مسئلۃ الذکر باالجہر

## ازتشریحات النابغہ

# مسئلة الذكر بالجهر :

## التحقيق في مسئلة الذكر بالجهر :

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿فَإِذَا قَضَيْتُم مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ أَوْ أَشَدَّ ذِكْرًا فَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا وَمَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ﴾ (سورة البقرة آيت : ۲۰۰)

بله مسئله چې زير بحث يې ګرځو هغه مسئله د ذکر بالجهر ده عوامو خواصو کې ددې خبرې پر چار شوې دي چې په زوره ذکر ناروا دي يا بدعت دي او زړه ور خلک ورته حرام هم وايي او صوفيه کرام چې د هرې طريقې وي د هغوي مجالس د ذکر جهر نه خالي نه وي نو د علماء له خوا نه په اهل د تصوف باندې دا عظيم اعتراض دي چې تاسو ذاکرين بالجهر يې او ذکر جهر يا حرام يا ناجائز يا بدعت دي نو دلته د مستدلينو د نفي د ذکر بالجهر چې کوم استدلال دي له کوم آيت نه يا له کومو احاديثو نه په آخره کې له هغې نه جوابونه په اقوالو د محدثينو کې ذکر شوې دي .

نچوړ او خلاصه دا چې د ذکر بالجهر او بالخفيه متعلق متضاد روايات په احاديثو کې موجود دي لکه د قرائت بالسر او قرائت بالجهر ددې دواړو متعلق روايات شته دي او کله چې په احاديثو کې متضاد روايات موجود شي د هغې احسن طريقه داده چې په مينځ کې تطبيق وکړې شي که نه شي کيدې بيا دې فيصله په تعارض باندې د سند په لحاظ سره دې جرحه وشي چې کوم قوي يې هغه دې معمول به وګرځيږي په مقابل کې ضعيف دې متروک شي مسئله د ذکر بالجهر کې متضاد روايات دي نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه بعضې مواضعو کې منع راغلې ده او بعضې کثيرو رواياتو کې ترغيب راغلې دي د هغې تطبيق امام نووي رَحِمَهُ اللهُ او دارنګې ابن حجر عسقلاني ابن حجر هيتمي علامه مناوي او زمونږ بعضې فقهاء جلال الدين سيوطي رَحِمَهُ اللهُ عبد الحي لکهنوي رَحِمَهُ اللهُ په دې سره کړې دي چې دا دې حمل کړې شي په اختلاف الاحوال والاشخاص سره هغه اشخاص چې هغوي د کاملينو او مکميلينو نه وي او هغوي د مستغرقينو نه دي او اهل د فناء تامې وي او طرفة العين وساوس خطرات شيطاني د هغه په صحبت ذکر کې قلب ته نه طاري کيږي نو د هغه لپاره

افضل خفیه ده او هغه روایات د ترک جهر دي ده ته مخاطب شي او کوم صوفیه او ذاکرین چې هغوي دوام مستغرقین نه دي فناء تامه نه لري او په صحت د ذکر کې دوساویسو خطراتو شیطانیه وو نه محفوظ نه دي نو د هغوي لپاره افضل ذکر جهري دي چې په هغې کې نشاط راځي په هغې کې غفلت ختمیږي یقظت راځي وساویسو خطراتو شیطانیوونه په کې اجتناب راځي نو د هغوي باره کې بیا ذکر جهر بهتر دي یعنې روایات د ترک جهر دي حمل شي په بعضې اشخاصو کاملو مکملو باندې او کوم چې مثبت د جهر دي هغه دي حمل شي په عامو اهل ذکرو باندې او دارنګې دویم تطبیق دغه علماء په اختلاف د مجالسو باندې کوي باختلاف الاحوال والاشخاص که مجلس د تالیینو للقرآن وه مجلس د علم د طلباء وه او د مونځ کوونکو وه نو دغه وخت کې جهر نه ترک جهر بهتر شو ځکه دا مفضي ګرځیږي ضرر له نائم ته مریض ته مصلي او قاري ته طالب ته نو بیا ترک جهر بهتر دي که دغه چند موانع نه وه چرته بیا هغه روایات دي معمول به وګرځیږي کوم کې چې ترغیب جهر ته دي بیا هغه افضل دي .

اقوی استدلالات د نافیینو د جهر د ﴿وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ﴾ نه دي او دارنګې حدیث د بخاري او د مسلم چې صحابه کرام د غزوي نه واپس را روان وه هغوي هللنا وکبرنا مونږ. لا اله الا الله الله اکبر وویل نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل :

إربعوا على انفسكم . نرمي راولي په ځانونو باندې .

انكم لا تدعون اصم ولا غائباً انه معكم انه سميع قريب. تاسو کوڼ یا غائب نه بلکې داسې ذات بلي چې مجیب دي او سمیع دي .

له اقوی ادله وو د نافیینو د پاره دا حدیث دي په آخر د بحث کې به زه دد دې آیت او حدیث نه جوابونه له طرف د مثبتینو نه ذکر کړم .

د قرآن عظیم الشان نه چې کوم مثبتین د ذکر جهر اثبات کوي هغه د سورة بقرې آیت نمبر ۲۰۰ په دې اعتبار چې العبرة لعموم الالفاظ لا لخصوص السبب ، د ظاهر د نص نه اخذ کوي :

﴿فَإِذَا قَضَيْتُم مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ﴾

کله چې پوره کړه تاسو مناسک د حج خپل بس یادوي خدای تعالی په شان د ذکر ستاسې اباء لره.

﴿أَوْ أَشَدَّ ذِكْرًا﴾ بل اشد ذکراً.

﴿فَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ﴾ بعضې د خلکو نه هغه دي چې وايي.

﴿رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا وَمَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ﴾ یواخې دنیا غواړي آخرت کې برخه نه لري معروف تفسیر په دغه ځای کې دادی چې دوي به له اداء د حج نه بعد په بعضې مراکزو د منی او د حرم کې او دریدل او د خپلو اباء تاریخ به یې په بلند آواز سره اعلانول نو رب کریم د هغې په رد باندې چې تاسو د اداء د حج نه بعد مخکې مو څنګه پلاران او د هغوي کارنامې مو مذاکره کوله اوس:

﴿فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ﴾ تاسو ذکر الله کوي په شان د ذکر ستاسې اباء لره.

نو ذکر د دوي اباء لره په خفیه مجالسو نه وه په جهري مجالسو وه تشبیه د ذکر الله یې ورکړه د ذکر د اباء سره په جهر کې لکه هلته مو چې څومره جهر کوه دغه شان اوس په ذکر الله جهر وکړي.

بل اشد ذکراً. دا ددغې تاویل تائید کوي بلکې د هغې نه اشد ذکر وکړي دا ذکر داسې یو عبادت دي چې اګر که فقهاء زیاتو مواضعو کې عام علماء مفسرین محققین العبرة لعموم الالفاظ لا لخصوص السبب ته ترجیح ورکوي خو فقهاء کله هم د مسئلې اخذ د عام لفظ نه، نه کوي فقهاء چې ایات څه باره کې نازل وي بس همغه مسئله ترې ثابتوي.

ګورئ دا ایات کریمه هغه کسان ﴿يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ چې هغوي د خدای تعالی او نبي عليه السلام سره جګړه کوي جزا ددوي څه شي دي.

﴿أَن يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَافٍ أَوْ يُنفَوْا مِنَ الْأَرْضِ﴾

دا څلور جزاګاني دي اوس ظاهر نص ته چې ګوري هر هغه څوک چې محارب الله ورسوله وي نو سزا یې داده چې یا یې قتل کړه یا یې اعدام کړه یا لاس او خپه ترې اُلټه کټ کړه او یا یې جلا وطن کړه.

او بل حديث مبارک کې راځي :

من عادى لي ولياً فقد اذنته بالحرب .

په اتفاق د علماء محدثينو سره د اولياء دشمن محارب الله او محارب الرسول دي ليکن يو فقيه هم دلته دا فيصله نه شي کولې چې د اولياء دشمن محارب الله او محارب الرسول دي نو فلهذا سزا يې ﴿يُقَتَّلُوٓاْ أَوۡ يُصَلَّبُوٓاْ أَوۡ تُقَطَّعَ أَيۡدِيهِمۡ﴾ آيت خو شته دي داسې خو حکم دا پرې نه چسپانيږي دا ولې ځکه فقهاء چې دي هغوي عموم د الفاظو ته نه ګوري دغه شان سود خور په اتفاق د علماء نص قراني نه ثابت دي چې اطلاق د محارب الله پرې شوې دي ليکن حکم د سود خور ﴿أَن يُقَتَّلُوٓاْ أَوۡ يُصَلَّبُوٓاْ﴾ دا نه دي ولې ځکه دا آيت کريمه نازل په حق د قطاعو طريقو کې دي نازل چې د چا باره کې دي نو عموم د لفظ ته فقيه و نه کتل خصوص د سبب ته يې وکتل خو دا فقهاء داسې دي .

هر چې محدثين او مفسرين دي هغوي بيا ترجيح عموم د لفظ ته ورکوي نه خصوص د سبب ته نو دې ځای نه اخذ د ذکر جهر په اصطلاح د فقهاء صحيح نه دي ځکه آيت نازل دي په حق د هغه اذکارو او تکبيراتو کې چې په ايامو تشريق کې وويلې شي په ايامو تشريق کې چې کوم تکبيرات دي نو هلته پرې حاجيان هم جهر کوي او په نورو ملکونو جامع مسجدونو کې د مانځه نه بعد ټول خلک په جهر سره تکبيرونه وايي نو دا چونکې نازل په حق د ايامو د تشريق کې دي او فاذکروا الله کې ذکر د مندوباتو نه دي او دلته فاذکروا الله کې ذکر واجب مراد دي ايامو تشريق کې چې د امام له ياده وځي او يو د مقتديانو نه يادوي نو وريادوي به يې نو خامخا به هغه ذکر کوي .

په اتفاق د علماء د ايامو تشريق وروسته د صلواتو نه دا ذکر واجب دي داد وجوب اخذ د کوم ځای نه کوي د فاذکروا نه وايي دغه ايات نازل په حق د ذکر د ايامو د تشريق کې دي نو په اصطلاح د فقهاء باندې دا عام استحبابي ذکر جهر اخذ ددې ځای نه صحيح نه دي ځکه چې دا نازل شوې دي په حق د ايامو تشريق د واجبو تکبيراتو متعلق دي استحبابي عام اذکار ددې نه اخذ کول دا اخذ د عموم لفظ نه دي نه د خصوص السبب نه او فقهاء عموم اللفظ ته ترجيح نه ورکوي خصوص السبب ته ترجيح ورکوي .

او هر چې مفسرین دي محدثین دي د هغوي اصطلاح داده چې اعتبار عموم د لفظ ته دي نه خصوص د سبب ته نو په اصطلاح د مفسرینو محدثینو باندې دې نه ذکر جهر ثابتیږي او رد خو نه شي کیدې چې ګڼې ایات به ذکري جهر رد شو رد نه دي فقط په ایامو د تشریق کې په زوره ذکر واجب وه.

نو لا اقل دا خو ترې ثابتیږي چې د ایامو تشریق نه غیر دي واجب نه وي جایز خو شو جواز خو ترې ثابتیږي که جائز نه واي نو امرِ غیر جائز په دغه خاصو د عبادت ورځو کې باري تعالی پرې امر ولې کوه دا خو ورځې د عبادت دي الله پاک دغه ورځې د عبادت لپاره خاص کړې دي نو دغه د عبادت په خاصو ورځو کې خالق په ذکرِ جهري باندې امر ولې وکړو نو هر کله چې هلته واجب شو نو د هغې نه خارج واجب چې نه دي دلیل د جواز خو جوړیږي چې دا ذکرِ جهر جائز عمل دي.

که دا غیر جائز عمل واي نو دا غیر جائز عمل په ایامو مخصوصو کې خالق واجب کولو بیا ولې یو شي ناجائز دي او ته د هغې نه د عبادت خوند اخلې درجه د وجوب ته یې رسوي نو اصلاً ذکر جهر خو جائز دي چې جائز ذي په دغه وخت کې په خاصو ایامو کې چې رد په رواج د مشرکینو باندې راشي چې هغوي به په دغه وخت کې د اباء مذاکره کوله عام مسلمانان دي د اله مذاکره وکړي دغه وخت کې نو دغه علت په وجه باندې چې په مشرکینو رد راشي او د مؤمنینو یو شعار اوچت شي نو دغه ذکر په دغه ایامو کې واجب شو دذې نه خارج ناروا نه دي دلیل د جواز خو شو چې جائز دي.

زاد المسیر في علم التفسیر جلد ۱ صفحه ۱۹۳ کې زما دغې تاویل ته اشاره کوي په دې کې تاویلات دي یو:

ان اهل الجاهلية كانوا اذا اجتمعوا بالموسم ذكروا افعال ابائهم وايامهم وانسابهم في الجاهلية فتفاخروا بذلك فنزلت هذه الآية وهذا المعنى مروي عن الحسن وعطاء ابن ابي رباح ومجاهد.

جلال الدین سیوطي رَحِمَهُ اللَّهُ په ذکرِ جهر باندې یوه رساله لیکلې ده د هغې نوم دي نتيجة الفكر في الجهر بالذكر، او عبد الحي لکهنوي رَحِمَهُ اللَّهُ پرې رساله لیکلې ده د هغې نوم

دي: سباحة الفكر في الجهر بالذكر. دا دواړه رسالي متداولي مونږ ته را رسيدلي رسالي دي.

روح المعاني جلد ۸ صفحه ۴۷۸ باندې د ذکر جهر متعلق د بعضې فقهاء نور رسائل ذکر کوي: وقد الف شيخ ابراهيم الکوراني رَحِمَهُ اللهُ دې ذکر کوي في تحقيق هذه المسئلة جوړې کړي.

رسالتين جليلتين. دوه ډيرې ښکلې رسالې يې جوړې کړې دي محمود آلوسي د ذکرِ جهر متعلق ليکي شيخ ابراهيم الکوراني د يوې نوم دي: نشر الزهر في الذکر بالجهر، او د دويمې نوم دي اتحاف المنيب الاواه بفضل الجهر بذکر الله، تقريباً دا څلور رسائل په ذکرِ بالجهر باندې د اسلافو نه راپاتې دي او ليکلې شوې دي د سيوطي رَحِمَهُ اللهُ د دغه نتيجة الفکر في الجهر بالذکر چې کوم په الحاوي للفتاوی په جلد ۱ صفحه ۳۷۵ باندې دغه رساله موجوده ده عنوان يې دادی: نتيجة الفکر في الجهر في الذکر.

بسم الله الرحمن الرحيم الحمد لله وکفیٰ وسلام على عباده الذين اصطفى

سائل تپوس کوي.

سألت اکرمك الله عما اعتاده السادات الصوفية من عقد حلق الذکر. تپوس کوم الله دې عزت درکړي د هغه څه نه چې صوفيه وو ساداتو عادت جوړ کړې دی چې جوړوي حلقې د ذکر.

والجهر به في المساجد. په جوماتونو کې په هغې کې په زوره ذکرونه کوي.

ورفع الصوت. اُوچتوي اواز.

بالتهليل. په لا اله الا الله سره.

وهل ذلك مکروه أو لا؟ دا مکروه دي که نه دي.

دا سائل سوال کړې وه.

الجواب: سيوطي رَحِمَهُ اللهُ جواب ورکړو:

انه لا کراهية في شيء من ذلك. دغه ذکرِ جهري کې په هيڅ کې هم کراهيت نشته.

وقد وردت احاديث تقتضي استحباب الجهر بالذكر . څه احاديث وارد دي چې هغه مقتضي دد دي چې په زوره ذکر مستحب دي .

واحاديث تقتضي استحباب الإسرار به . څه نور احاديث وارد دي چې هغه متتضي دد دي چې پټ ذکر مستحب دي .

والجمع بينهما . جمع په مينځ دد دواړو روايتينو کې داده :

ان ذلك يختلف باختلاف الأحوال والأشخاص . دا مختلف دي دا حکمونه په اختلاف د حالاتو او شخصونو کې يو شخص د کملو نه وي هغه باندې غفلت نه راځي .

وساوس خطرات شيطاني نه لري هغه ته هغه رواياتو باندې عمل په کار دي چې هغې استحباب د خفيه ذکر راغلې وي يو سړي ته وخت په وخت وسوسې زړه ته راځي هغه چې ذکرِ جهر ونه کړي دغه شيطان تبنتي نه د مجلس نه نو ددغې شخص د پاره ذکرِ جهر بهتر شو دغه شان احوال دي مصلي او نائم مريض وغيره موجود وي بيا خفيه بهتر دي که دغه نه وي بيا جهر بهتر دي .

کما جمع النووي بمثل ذلك بين الأحاديث الواردة باستحباب الجهر بقراءة القرآن والاحاديث الواردة باستحباب الاسرار بها . امام نووي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د قرآن عظيم الشان جهر او اسرار کې چې احاديث متضاد بنکاري په دغه طريقه جمع کړې دي چې داد اشخاصو پورې تعلق لري او د احوالو پورې .

وها انا أبين ذلك فصلاً فصلاً . بيا په دغه رساله کې سيوطي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د ۲۵ احاديثو نه قوي استدلالات وي زه يې ذکر کوم .

(۱) صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۲۱۳ ، امام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ باب لړوي : باب الذكر بعد الصلواة ، ذکر د لمانځه نه بعد دې کې حديث ذکر کوي :

ان ابن عباس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ أخبره . چې مولى ابن عباس دي حکايت کوي چې عبد الله ابن عباس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ما ته خبر راکړو .

ان رفع الصوت بالذكر . اوچتول د اواز په ذکر سره .

حين ينصرف الناس من المكتوبة. كله به چې راوګرځيدل خلک د فرض لمانځه نه.

كان على عهد النبي ﷺ. وه په زمانه د نبي عليه السلام کې آواز او چتول په ذکر باندې د فرض لمانځه نه وروسته رواج وه.

وقال ابن عباس رضي الله عنه كنت اعلم اذا انصرفوا بذلك اذا سمعته. دده عمر کم وه بعضې وخت کې چې دې حاضر شوې نه دي او په کور کې پاتې شوې د جمعې نه نو دغه وخت کې دې وايي:

كنت اعلم اذا انصرفوا. د نبي اکرم ﷺ د وفات په وخت دده عمر ۱۵ کاله وه نو چې سوچ وشي د هجرت په اولو ايامو کې به دې ۵ کلن وه يا ۵ کاله د هجرت دوره تيرېږي دې ۱۰ کلن وه دده عمر کم وه داد هغه وخت قصه کوي چې دې کشر دي ٦ يا ۷ کلو دي.

وقال ابن عباس كنت اعلم اذا انصرفوا بذلك اذا سمعته. زه به پوهيدمه چې دوي به د لمانځه نه راوګرځيدل په دغه ګرځيدو د لمانځه ددوي باندې څنګه به پوهيدمه.

اذا سمعته. چې ما به دا ذکر واوريدو مسجد کې به يوه زنګاوه د ذکر لاړه په دې به زه هلته خپل کور کې پوه شومه چې جمعه راوګرځيده.

دا حديث بخاري راخيستي او ټول كتب الحديث يې را اخلي.

صحيح مسلم جلد ۲ صفحه ۹۱ کې ذکر کړي، مسند احمد بن حنبل جلد ۱ صفحه ۳٦۷، صحيح ابن خزيمه جلد ۳ صفحه ۱۰۲، کې هم دا حديث ذکر کړې دي.

امام بخاري رحمه الله په بخاري کې د ذکر متعلق دوه متضاد بابونه لړولي دي يو دا باب دي چې: باب الذكر بعد الصلوة، په دې کې د رفع د ذکر هغه احاديث معلوميږي او دا ترې فهميږي چې امام بخاري رحمه الله د جهر قائل دي ځکه باب کې حديث جهري را اخلي چې کوم د جهر اثبات په کې کيږي.

دويم باب امام بخاري لړوي هغه په كتاب المغازي کې دي: باب ما يكره من رفع الصوت بالتكبير، په الله اكبر کې جهر مکروه دي له دغه باب د امام بخاري نه بعضې محدثين لکه ابن بطال المالکي ځاى په ځاى به تاسو په حاشيو کې اربعوا على انفسكم د

حدیث په حاشیه باندې قال ابن بطال رفع الصوت بالذکر مکروه به قال عامة السلف ، داسې عبارات پیدا کیږي د ابن بطال مالکي نه هغه د ابن بطال مالکي او د ابن حجر عسقلاني په فهم د ترجمو د امام بخاري کې په رایه کې اختلاف دي .

ابن بطال مالکي وایي چې دغه باب امام بخاري ولړوه چې باب ما یکره من رفع الصوت في التکبیر نو دې د جهر بالذکر مخالف دي ابن بطال ترې دا فهم کوي ، ابن حجر عسقلاني وایي نه امام بخاري چې کوم دي باب الذکر بعد الصلوة ولګوه او دلته یې د کراهیت نسبت تکبیر ته وکړو په باب المغازي کې .

نو ابن حجر صاحب دې ته ترجیح ورکوي چې د امام بخاري رایه د جهر د ذکر ده البته کله چې دوي بیا جهاد ته روان وي د جهاد د روانګي په وخت کې چې کله دوي ځي هلته د الله اکبر نعرې چې دي هغه مخیلي دي چې دوي کې نشه رانه شي لکه کله سرې په جذبه کې راشي په کثرت بیا نو نشه کې راځي بیا امام بخاري د جهاد په صف کې د الله اکبر د جهر مخالف دي د ابن حجر صاحب دا رایه ده .

فتح الباري ابن حجر عسقلاني جلد ٦ صفحه ۱۳۵ باندې : باب ما یکره من رفع الصوت في التکبیر ، د امام بخاري باب را اخلي لاندې ترې خپل قول ذکر کوي :

اورد . راوړي دي امام بخاري .

فیه . په دې کې حدیث د ابي موسی .

کنا اذا اشرفنا علی واد هللنا وکبر . دا همغه دي چې نافین ترې استدلال کوي مونږ به چې رابنکاره شو په یو وادي باندې لا اله الا الله به مو ویلي او تکبیر به مو ویلي .

إرتفعت اصواتنا . آوازونه به مو اوچت کړي وه .

بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام آواز راباندې وکړو :

اربعوا علی انفسکم وسیأتي شرحه في کتاب الدعوات قوله اربعوا بفتح الموحدة ای ارفقوا .

نرمي وکړي په ځانونو باندې .

قال الطبري . طبري وایي . فیه کراهیة رفع الصوت بالدعاء والذکر وبه قال عامة السلف

من الصحابة والتابعين انتهى .

اوس ابن حجر صاحب څه وايي :

وتصرف البخاري يقتضي ان ذلك خاص بالتكبير عند القتال . ابن حجر صاحب وايي دا طرز او طريق د ترجمې د بخاري تقاضا ددې کوي چې دا کراهيت مختص دي تر تکبيره عند القتال .

واما رفع الصوت في غيره . له دغه وخت نه غير په بل ځای کې اواز اوچتول په ذکر يا په تکبير .

فقد تقدم في کتاب الصلوة حديث ابن عباس أن رفع الصوت بالذکر کان على العهد النبوي اذا نصرفوا من المکتوبة وتقدم البحث فيه هناك .

نو اوس د ابن حجر صاحب له دې عبارت نه څه نچوړ راوځي دا ترې راوځي چې دې وايي امام بخاري رحمه الله چې کومه ترجمه لړولې ده د کراهيت د رفع الصوت في التکبير دا مختص تر قتال ده هغه وخت کې دې مکروه ګڼي هر چې له دې نه بغير بل وخت کې ده هغه د ابن عباس صاحب د جهر حديث يې چې ذکر کړې دي هغې نه دده رايه معلوميږي چې دې د جهر قائل دي .

حديث د اربعوا على انفسکم عبد الحي لکهنوي رحمه الله په سباحة الفکر کې او دارنګې محدثين مجاب ګرځوي په دې سره چې دا امر تشفيقي دي تشريعي نه دي دا فقهاءدي الفقهاء اعلم بمعاني الحديث ، او دلته لفظ د اربعوا دلته يې دا نه دي ويلي چې واخفوا پټ کړي آوازونه داسې نه وايي اربعوا معنى ارفقوا له رفقت نه دي نرمي نه دي شفقت نه دي په ځان لږ نرمي راولي او دغه عمل چې شوې وه له غزوې نه واپسي کې شوې وه او دوي چغې وهلي جهاد ستړي کړي وه سفر ستړي کړي وه او نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل تاسو آوازونه نرم کړي .

نو عبد الحي لکهنوي رحمه الله وايي چې دا امر تشريعي نه دي چې ته له دې نه نهي ثابته کړي او جهر ته مکروه ووايي دا امر تشفيقي دي د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم په دوي رحم او

شفقت راغلي .

دد پ داسې مثال دي مثلاً یو معروف شیخ چې د هغه قول خلکو ته مقبول وي هغه ناست دي ذکرِ جهر کیږي ډیر په دې آخره کې یو نوي کس مجلس ته راغې ذکري جهر باندې ذاکرین ستړې شوې دي او دلته دا شیخ ورته وایي بس دي نور بند کړي ذکر دا نوي چې دې مجلس ته راغې هغه خبره خوره کړه چې فلاني شیخ هم د ذکري جهر مخالف دي زه ورغلم خلکو ذکري جهر کوه هغه بند کړ نو ځکه یې بند کړه ناجائز یې ګڼلو نه ناجائز یې نه ګڼله خلک ستړي وه شفقت یې پرې وکړو .

فقهاء دغه وایي چې د اربعوا على انفسكم ، امر نبي عَلَيْهِ السَّلَام تشریع نه ده کړي چې دا ګڼې ناروا دي ولې کوي بلکې دا شفقت دي په دې صحابوو باندې چې غزی کې ستړې شوې یې په لاره ستړي یې په ځان لږ نرمي راولي که تاسو یې پټ هم وکړي ستاسو خالق خو یې اوري نو نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دغې نهي امر اربعوا هغه وجه فقهاء حمل کړه په تشفیق باندې نه په تشریع باندې .

دا رنګې شرح النووي على مسلم جلد ۲ صفحه ۳٦۰ حدیث د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وارد بالجهر چې امام مسلم ذکر کړي امام نووي پرې شرحه کوي :

هذا دليل لما قاله بعض السلف انه يستحب رفع الصوت بالتكبير والذكر عقب المكتوبة.

دلیل د بعضې سلفو چې وایي مستحب دي اوچتول د اواز په تکبیر سره په ذکر سره وروسته له فرضو نه .

و ممن استحبه من المتأخرين ابن حزم الظاهري . هغه مستحب ګڼلي دي .

دا رنګې شرح سنن ابي داؤد عبد المحسن العباد جلد ٦ صفحه ۱۲۲ :

والمقصود من هذه الترجمة . مقصود له دې ترجمې نه چې باب الذكر بعد الصلواة دي .

اثبات التكبير والذكر بعد الصلاة وانه يرفع بهما الصوت . آواز به پرې اوچتوي .

و ذكر التكبير لانه جاء في الرواية الاولى وجاء في الثانية الذكر وهو اعم من التكبير لان الذكر يشمل التكبير و غير التكبير .

نو يو حديث کې تکبير راغې او بل کې ذکر راغې نو بعضې وايي چې مراد له ذکر نه هم دا تکبير دي او بعضې يې عاموي چې نه ذکر عام دي تکبير خاص دي هغه هم مراد دي عام اذکار هم مراد دي .

مشکوة المصابيح مع شرحه مرقات جلد ۳ صفحه ۶۱۷ هغه کې ليکي :

لکن قوله التکبير اخص من هذه الرواية . چې هغه ذکر دي .

لانه الذکر أعم من التکبير فيحتمل أنهم کانوا يرفعون الصوت بالتکبير والذکر کليهما. په دواړو باندې رفع د صوت کړې ده .

فيکون الحديث دليلاً على استحباب رفع الصوت بقول : الله اکبر مرةً او مکرراً .

دغه شان : وباذکار أخرى عقب المکتوبة . دا مستحب شو .

دارنګې احکام الأحکام شرح عمدة الاحکام جلد ۱ صفحه ۲۱۴ هغې کې ذکر کوي :

فيه دليل على جواز الجهر بالذکر عقيب الصلاة والتکبير بخصوصه من جملة الذکر .

(۲) دليل صحيح ابن حبان جلد ۹ صفحه ۱۱۲ کې ذکر کړې دي :

اخبرنا عمران بن موسى بن مجاشع حدثنا عثمان بن ابي شيبة حدثنا سفيان عن عبدالله بن ابي بکر عن عبدالملك بن ابي شيبة حدثنا سفيان عن عبدالله بن ابي بکر عن عبدالملك بن ابي بکر عن خلاد بن السائب عن ابيه يبلغ به النبي صلى الله عليه وسلم .

حديث مرفوع کوه .

قال أتاني جبريل . جبريل راغې .

فامرني . ما ته يې امر وکړو .

ان امر اصحابي . چې زه خپلو صحابه وو ته امر وکړمه .

ان يرفعوا اصواتهم بالاهلال . چې آوازونه دې اوچت کړي په اهلال سره يا په تلبيې سره. په نزد د فقهاء دې حديث نه اخذ صحيح نه دي ځکه وارد شو په حق د تلبيه کې او د نيت د احرام کې .

لیکن په نزد د محدثینو او مفسرینو باندې چې هغوي عبرت عموم د لفظ ته ګوري نه خصوص د سبب ته اخذ ترې کیدې شي ځکه امام سیوطي رَحِمَهُ اللَّهُ دې حدیث نه د جهري ذکر اثبات کړې دي.

(۳) دلیل: شعب الایمان جلد ۲ صفحه ۱۰۰ ابن الادرع وایي چې دویمه شپه وه د نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره زه رابهر شومه زه پیره دار ومه.

فوجدني أحرس. زه یې مونده کړمه چې ما پیره کوله.

فاخذ بیدي. زما لاس یې ونیوه.

فانطلقت معه. زه ور سره لاړمه.

فمر برجل في المسجد یصلي. تیر شو په یو سړي په مسجد کې مونځ کوه.

رافعاً صوته. آواز یې اوچت دي دا هغه روایت دي چې د هغه نه د اه اه آواز کیږي وروسته روایات پرې دال دي.

قال قلت یا رسول الله عسی ان یکون هذا مرائیاً. دا به ریا کاروي.

قال. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل.

ولکنه اواه. دا کثیر التأوه والادي یا راجع الی الله دي.

قال فذهبت بعد ذلك انظر. ما ورته کتل.

من هو. چې څوک دي.

فاذا هو. وه مې کتل هغه وه.

عبدالله ذوالنجادین بالنون. لیکن ابو احمد وایي:

انما هو البجادین. قال البیهقي رَحِمَهُ اللَّهُ. دا ذوالبجادین وه چې د شپې ذکرې کوه د خولې نه یې آه آه او از ختلو مونځ یې کوه بیا ترې اه اه چغې ختلې وي.

نو ما نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وویل چې دا به ریاکار وي وایي نه دا اواه دي ددې خدای ته رجوع ډیره ده.

فيض القدير شرح الجامع الصغير جلد ۱ صفحه ۵۸۵، احاديث متضاد چې كوم راغلي د ذكري جهر متعلق هغې كې تطبيق كوي ؛

واجيب بان الاخفاء افضل حيث خاف الرياء . اخفاء په ذكر بهتره ده هغه وخت كې چې يره دريا وي .

او تأذى به مصل او نائم . مونځ كوونكي او نائم پرې تكليف كيږي .

والجهر افضل . او جهري ذكر افضل دي .

في غير ذلك . بغير د دغه وخت نه .

لان العمل به اكثر . ځكه عمل په دې باندې ډير زيات دي يعنې ډير خلک جهري ذكر كوي .

ولان فائدته تتعدي الى السامع . فائده يې عامه ده سامعينو ته .

ولانه يوقظ قلب الذاكر . د ذاكرينو زړه راويښه وي .

ويجمع همه الى الفكر . مراقبې لره يې بوځي .

ويصرف سمعه اليه ويطرد النوم . شړي خوب لره .

ويزيد في النشاط . ذوق او نشاط كې زيادت راولي .

همدغه حديث ذكر كوي هغې باندې بيا شرحه كوي سنن ابي داؤد جلد ۳ صفحه ۱۷۴ بيروتي معرب چاپ جابر بن عبد الله همدغه مخكني حديث ذكر كوي چې دا ذو البجادين وفات شوې وه .

قال رأى ناس ناراً في المقبرة فجاءوا . وليدو اور خلكو په مقبره كې ورته راغلل .

فاذا رسول الله ﷺ في القبر واذا هو يقول : ناولوني صاحبكم . راكړي ما ته چې په خپلو لاسونو يې دفن كړمه .

فاذا هو الرجل الذي كان يرفع صوته بالذكر . دا هغه سړي وه چې په زوره ذكر به يې كوه دا صحابه وو كې معروف وه په جهري ذكر باندې .

المستدرك على الصحيحين للحاكم جلد ۱ صفحه ۵۲۲ د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي:

أن رجلا كان يرفع صوته بالذكر. يو سړي وه چې هغه به اواز په ذكر اوچتوه.

فقال رجل. يو سړي ورته وويل.

لو أن هذا خفض من صوته. كه ده دا آواز ټيټ كړي واي.

فقال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فانه أواه. دې كثير التأوه دي يا راجع الى الله دي.

قال فمات فرأى رجل نارا في قبره فأتاه فاذا رسول الله فيه وهو يقول: هلموا الى صاحبكم فاذا هو الرجل الذي كان يرفع صوته بالذكر.

دا ټول روايات يوه معنى وركوي، معجم الكبير للطبراني جلد ۲ صفحه ۲۵۲ كې هم دا حديث ذكر كړي.

(۴) دليل: صحيح البخاري جلد ۹ صفحه ۱۷۸ كې حديث د ابي هريرة موجود دي:

من حديث ابي هريرة انا عند ظن عبدي بي. زه په نيز د گمان د بنده يم په ما باندې.

وانا معه. زه له ده سره يم.

اذا ذكرني فان ذكرني في نفسه ذكرته في نفسي وان ذكرني في ملأ.

كه ما په زړه كې يادوي.

ذكرته في ملأ خير منهم وان تقرب الي شبرا تقربت اليه ذراعا وان تقرب الي ذراعا تقربت اليه باعا وان اتاني يمشي اتيته هرولة.

الحاوي للفتاوي للسيوطي جلد ۱ صفحه ۳۷۶ كې دې حديث نه وروسته ليكي:

والذكر في الملاء لا يكون الا عن جهر. زړه كې ذكر نه وي مگر په زوره وي دې نه اخذ كوي چې داد حلقې ذكر ترې ثابت شو كه څوك مې په زړه كې يادوي زه يې د فرشتو په زړه كې يادومه.

(۵) دليل: الحاوي للفتاوى جلد ۱ صفحه ۳۷۶، هغه معروف حديث د مسلم او حاكم ذكر كوي:

اخرج مسلم والحاكم واللفظ له عن ابي هريرة قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان لله ملائكة سيارة فضلاء يلتمسون مجالس الذكر في الارض . دا ذاكرين او صوفيه چې دي دا ډير مظلوم قوم دي دوي هيڅ سره کار نه لري او خلک دوي پسې خبرې کوي .

او چې څومره فضائل په ذخيره د احاديثو کې دوي لري دیو فن والایې هم نه لري يو مجاهدين او بل ذاکرين دوي ذخيره د حديثو ډيره زياته لري د خپل عمل په فضيلت جهاد باره کې چې ولړيدي دومره زيات فضائل دي که دې واوريدل بيا به دد دنيا يو عمل هم خوند در نه کړي ته به وايې چې يو اځې جهاد کوم .

که د ذکر فضائل دي واوريدل نو دومره فضائل دي چې بيا د جهاد نه هم افضل ثابت شوې دي ذکر نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو ته فرمايي : داسې عمل درو ښايمه چې هغه له دې نه هم بهتر وي چې تاسو کې يو کس سخا کوي د يو طرف نه تر مشرقه روان وي او هم داسې پيسي ويشي او دې نه هم بهتر عمل وي داسې عمل درو ښايمه چې جهاد کې توره راخيستې وي لاس کې توره ماتيږي بله را اخلي د هغې نه هم بهتر وي واي چې وښايه دا څه شي دي وايي ذکر الله يا دا الفاظ دي چې دا ژبه دې د خدای له ذکر نه وچه نه شي .

نو داسې صريحو الفاظو کې د جهاد په مقابله کې د ذکر فضيلت راغلی دي د هغې لويه وجه داده چې :

المجاهد من جاهد نفسه .

او ذاکرين چې کوم دي د دوي مقصد هم مجاهده له نفس سره وي نو په هغه عظيم جهاد کې دوي هم لګيا دي دا دي مجاهدين په حقيقت کې خو چونکې انسان د عالم صغير ډانچه ده او په دې ډانچه کې کافر شيطان دي او منافق نفس دي نو دا راپورته شوې دي دغه کافر او منافق د خپل وطن چې ډانچه ده دده دده ملک دي دا تنه دينه دا دوه فره کوي نو دوي سره جهاد کوي او هر چې مجاهدين دي هغوي په عالم کبير کې جهاد کوي د کفارو او منافقينو سره ملک چې کوم عامه دنيا ده هغه صفا کوي ترې نه تزکيه د نفس ته جهاد نه ويل دا هم جرم دي .

خو تزکيه د نفس جهاد بيا د هغې جهاد ؛ پاره مانع ګرځول دا خو اعظم جرم دي چې وايي زه تزکيه کې لګيا يمه په ما ګنې بل جهاد نشته دي نه دا تزکيه به دې نه خلاصيږي نو دا

خو بیا د تبلیغیانو تزکیه شوه ۱۲۰ کاله وشول تزکیه خلاصه نه شوه جهاد به کله بیا ته کوي که صوفیه وو کې هم څوک په دې نظر باندې وي چې زه په جهاد باندې لګیا یمه ما باندې ګنې بل جهاد نشته نه جهاد لازم دي که لساني کوي که مالي کوي که بالید کوي دې نه به کیني نه.

نو دغه فرشتې یادوي.

یلتمسون مجالس الذکر في الارض. هغه ظلم د صوفیه سره په دې روان دي چې علماء کیني طالبانو ته داحدیث په ځان چسپانوي دا طالبان وایي چې راغونه دي دا په ذکر کې داخل دي کنه نو نه په شریعت کې دې ته مجلس د ذکر وایي او نه عرف کې دې ته مجلس د ذکر وایي ته یو بیګانه سړي د طالبانو درس کې کینوه هغه بیا خلکو ته دا حکایت چې زه هم ذکر کې ناست ومه یا د ذکر جلسه کې ناست ومه عرف ته ډیر اعتبار دي.

په اصطلاحات شرعیه وو کې اصطلاح د شرعې به یا د لغت نه ثابتوي یا به یې د عرف نه ثابتوي نو اهل الذکر نه لغتاً په اهل علمو اطلاق کیږي په اهل تبلیغ یې اطلاق نه کیږي په اهل جهاد یې اطلاق نه کیږي هغه ځان ته فضائل لري د هغې لپاره علماء ځان ته کتابونه لیکلي دي د ملا صاحب ژبه نرمه ده هر خوا تاویږي نو چې کله دې ځای ته راورسیږي نو بیا ځان نه اهل ذکر جوړ کړي هغه ټول د ذکر فضائل په ځان چسپانوي.

بیا چې کله د اهل علمو فضائل راشي هغې کې بیا صوفي ذاکر کله ځان سره داخلوي هغه خو د سره ور کوي نه وایي دا خو یې زه یاد کړې یمه ذاکر خو وایي د سره په کې دي نه نا هر چا ته خپل فرضیت دي نبي اکرم ﷺ د هر عمل خپل ترغیبات بیان کړې دي محدثینو د هر عمل د پاره خپل بابونه لړولي دي فضائلو د ذکر باندې خپل باب دي چې باب دي نو دا ذاکرینو ته شامل دي نو دا ظلم کیږي د صوفیه وو ذاکرینو سره.

فاذا اتوا علی مجلس ذکر حف بعضهم بعضا باجنحتهم الی السماء. کله چې دا فرشتې راشي په مجلس د ذکر باندې تاوي کړي بعضې د بعضو نه وزرې خپلې اسمان ته ورسیږي.

فیقول الله من أین جئتم. له کوم ځای نه راغلي.

فیقولون جئنا من عند عبادك یسبحونك ویکبرونك ویحمدونك ویهللونك.

سبحان الله الله اکبر او الحمد لله یې ویلي او لا اله الا الله یې ویلي.

ويسألونك . سوال يې درنه کوه .

ويستجيرونك . او پناه يې غوښتله له جهنم نه :

فيقول ما يسألون وهو اعلم . ځه يې غوښتل ر انه الله عالم دي بيا هم ترينه سوال کوي تائيد د پاره .

فيقولون يسألونك الجنة فيقول وهل رأوها ؟ فيقولون لا يارب فيقول فكيف لو رأوها ؟ ثم يقول و مم يستجيروني وهو أعلم بهم ؟ فيقولن من النار فيقول وهل رأوها فيقولون لا فيقول فكيف لو رأوها ثم يقول اشهدوا أني قد غفرت لهم وأعطيتهم ما سألوني واجرتهم مما استجاروني فيقولون .فرښتي عرض کوي :

ربنا ان فيهم عبدًا خطاء . بنده خطا کار په کې وه .

جلس اليهم وليس منهم فيقول وهو ايضاً قد غفرت له هم القوم لا يشق بهم جليسهم .

دا سيوطي رَحِمَهُ اللَّهُ ذکري جهري کې را اخيستي دي استدلال په دې باندې کوي چې دلته دا کومې فرښتې چې دي دا کراماً کاتبين نه دي چې دا خفيه عمل او جهري عمل ټولو له حافظې دي نو عامې فرښتې چې ستا ديو عمل درک کوي نو وروسته له سماع نه يې کوي چې دوي جهر نه واي کړي فرښتو دا څه واوريدل چې دلته مجلس د ذکر دي .

سيوطي رَحِمَهُ اللَّهُ ترې استدلال په دې شکل کوي دا فرښتو واي دا مجلس څنګه پيدا کړو وايي دا يې په جهر پيدا کړو چې دوي هلته ذکري جهري کو نو فرښتې دا مجلس را پيدا کړي چې دغه ځاى کې ذاکرين لګيا دي .

(٦) دليل : اخرج مسلم والترمذي عن ابي هريرة وابي سعيد الخدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما من قوم يذكرون الله .

- نشته يو قوم چې د الله ذکر کوي .

الا حفتهم الملائكة، مګر فرښتې د رحمت وزرې تاوه وي دوي نه .

وغشيتهم الرحمة . او پټوي رحمت دوي لره .

ونزلت عليهم السكينة . نازلیږي په دوي سکینه د ارامي .
وذكرهم الله فيمن عنده . د فرشتو جماعت کې یادوي .
دې نه هم اجتماعي حلقه ، ذکر ثابتوي .
(۷) دلیل : دارنګې المستدرک علی الصحیحین للحاکم جلد ۱ صفحه ۶۷۷ :
عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : اكثروا ذكر الله حتى يقولوا مجنون . زیات کوي ذکر د خدای تعالی تر دې چې ووايي دا خلک : الت مجنون ، ته لیوني يې .
امام حاکم د حدیث د ذکر نه بعد دا ذکر کړي چې صحيح الإسناد دي .
وابو الهيثم سليمان بن عتبة العتواري من ثقات اهل مصر .
که جرحه پرې کوي مه کوه .
مسند احمد بن حنبل هم دا حدیث ذکر کوي جلد ۳ صفحه ۷۱ ، الدعاء للطبراني جلد ۱ صفحه ۵۲۱ ، الدعوات الكبير د بيهقي جلد ۱ صفحه ۱۷ ، شعب الايمان جلد ۲ صفحه ۶۴ ، صحیح ابن حبان جلد ۳ صفحه ۹۹ ، مسند ابي يعلى جلد ۲ صفحه ۱۳۰ ، دې ټولو کتابونو دا حدیث ذکر کړې دي چې اكثروا ذكر الله حتى يقولوا مجنون .
وروسته د سیوطي رحمه الله قول د اخذ ما ذکر کړي دي چې اخذ په دې طریقه دې نه کوي چې ته جهري ذکر و نه کړي تا ته څوک مجنون نه وايي پټ ذکر چې کوي تا ته خو ولي او بزرګ وايي ته ځان ته کینه ذکر کوه تا ته څوک لیوني وايي تا ته به هله لیوني ویل کیږي چې ته جهر په ذکر و کړي او ربنتیا هم چې مونږ په عرف کې ګورو چې څوک جهر په ذکر کوي هغوي ته تسمیه د مجانینو شوې ده خفیه ذکر والا ته چا تر اوسه مجانین نه دي ویلي .
(۸) دلیل : دارنګې الزهد لابن المبارک جلد ۱ صفحه ۳۶۲ :
اخبرنا عبد الله بن المبارك قال اخبرنا سعيد اخو حماد بن زيد عن عمرو بن مالك عن ابي الجوزاء قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم .
دا حدیث مرسل دي سند کې څه جرحه نشته فقط مرسل دي اوس دا خبره چې مراسیل د

تابعينو مقبول دي او که نه؟

په نزد د جمهورو باندې د تابعينو کل مراسيل مقبول دي په دې کې امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ تفرد کړي دې چې د دري تابعينو مراسل منم د نورو نه منم: (۱) حسن بصري، (۲) سعيد ابن المسيب، (۳) ابن الشهاب الزهري رَحِمَهُمُ اللَّهُ، دا دري امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ مني نور نه مني خو داد هغه تفرد دي د جمهورو رايه نه ده، امام احمد، امام مالک، امام ابو حنيفة، امام بخاري، امام مسلم، ابي داؤد، ترمذي، نسائي دا کل محدثينو په نزد مراسيل مقبول دي.

داد جمهورو رايه ده چې مرسل د تابعي مقبول دي داد خير القرون نه دي بيا د ابو الجوزاء غوندې چې معروف شيخ د احاديثو وي او هغه قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ووايي دا خو څه جرم نه دي.

البته په معارضه کې که يو حديث متصل پيدا شي نو بيا به له هغې نه په درجه کې کم وي خو دې ته منقطع نه ويل کيږي دې ته مرسل ويل کيږي دا په اخر د سند کې راوي ساقط شوې وي تابعي راپاڅيدلي په حديثِ مرفوعه يې مسنده کې صحابي ترک کړې دي نو دغه په نزد جماهيرو مقبول دي.

يوه بله انقطاع ده مثلاً د ابو الجوزاء نه بنکته ابو حماد بن زيد مثال بطور د عمرو بن مالک سره لقاء نه وي او دلته يو راوي ترک شي دې حديث ته منقطع وايي دا حديث ضعيف دي د منقطع او مرسل به فرق کوي نو دې حديث ته که هر چا ضعيف ويلي ناپوهي يې کړې ده محدثين دې ته مرسل وايي او مرسل عند الجماهير د تابعينو مقبول دي.

**قال قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اکثروا ذکر الله عزوجل حتى يظن المنافقون انکم مراءون.** زيات کوي ذکر د خدای تعالى تر دې چې منافقان گمان وکړي چې تاسو ريا کار يې.

دې ځای نه هم امام سيوطي رَحِمَهُ اللَّهُ دا اخذ کوي چې ريا نسبت په تا باندې وروسته له جهر نه کيږي که ته خفيه لگيا يې تا ته څوک ريا کار نه وايي خو يره په کار ده حديث دا هم ثابتوي چې ذاکر ته ريا کار ويل داد منافق کار دي دومره ذکر وکړي چې منافق درته ريا کار ووايي.

نو معلومه شوه چې ذاکرینو ته د ریاکار نسبت کول دا نسبت د منافقینو لخوا نه وي که عقیدوي نه وي نو عملي نفاق کې به راشي نو ذاکرینو ته ریا کار مه وایي .

دغه دواړه احادیث چې ما ذکر کړل فیض القدیر د علامه مناوي په جلد ۲ صفحه ۱۰۸ کې نقلوي ذکر کوي وایي :

ان ما اعتاده الصوفية من عقد حلق الذكر . هغه چې عادت جوړ کړې صوفیه کرامو د ذکر حلقې جوړوي .

والجهر به في المساجد . مساجدو کې په هغې جهر کوي .

ورفع الصوت بالتهليل . لا اله الا الله په زوره وایي .

لا كراهية فيه . هیڅ کراهیت په هغې کې نشته .

ذكره في فتاوى الحديثية قال وقد وردت اخبار . څه احادیث وارد دي .

تقتضي ندب الجهر بالذكر . چې هغه مقتضي د استحباب د ذکر بالجهر دي .

واخبار . څه اخبار نور وارد دي .

تقتضي الاسرار به . چې هغه تقاضا د پټ لوستو کوي په ذکر باندې .

او جمع بينهما داده :

ان ذلك يختلف باختلاف الأحوال والأشخاص . دا اشخاصو احوالو کې مختلف دي روایات د سر او پټ د کملو سره ولګوه او د جهر عامو مجالسو کې ولګوه نشاط راولي او دغه شان احوالو ته وګوره بیمار نائم مصلي موجود وه روایات د ترک د جهر باندې عمل وکړه او که دا نه وه نو جهري وکړه .

كما جمع النووي به بين الاحاديث الواردة بندب الجهر بالقرآة والواردة بندب الاسرار بها. تلاوت کې چې کوم د جهر او خفیه ترغیب راغلي دي هغې کې چې کوم تطبیق شوې دي امام نووي کړې دي همغه تطبیق دلته هم دي بیا حدیث ذکر کوي :

اكثروا ذكر الله حتى يقول المنافقون أنكم مراءون أي إلى أن يقول إن اكثاركم لذكره إنما هو رياء وسمعة . دومره ذکر وکړي چې ستاسو د ډیر ذکر له وجې نه منافقین ووایي چې دا

خو ریاء او سمعت دي ·

لا اخلاصا یعني إکثروا ذکره . ډیر ذکر کوي ·

وان رموکم بذلك . اګر که دوي تاسو باندې فتوی د ریاکار کوي ·

فانه لا یضرکم . دا تاسو ته ضرر نه کوي ·

کیدهم شیئاً والله مع الصابرین الذاکرین . صابرین خو ډیر غټ تعبیر دي که هر قسم تاپې پرې خلک لږوي ریاء کار خو لا وړه تاپه ده ډیرې غټې غټې تاپې پرې خلک لږوي داذکرِ جهري د صوفیه وو هغه منفور عمل دي د علماء طالبانو او خواصو عوامو مینځ کې ·

چې طالب او عالم داسې ګمان کوي چې صوفي سره به ذکرِ جهري کې یو دلیل هم نه وي یعنې دایې هغه عمل دي چې دوي ته منفور عمل دي چې هغه دوي بالکلیه ناجائز ګڼي دومره دلائل په کې صوفیه لري او د فقهاء محدثینو تائیدات په کې لري پاتې شو هغه اعمال ددوي چې هغه ممدوح دي او دوي ته مقبول دي نو هغې کې به یې څنګه نه لري لکه فضائل د ذکر ·

الحاوي للفتاوی للسیوطي جلد ۱ صفحه ۳۷۶ کې دا حدیثین را اخیستې بیا وایي :

ووجه الدلالة من هذا والذي قبله ان ذلك إنما یقال عند الجهر دون الاسرار . دا تا ته ریا کار او لیوني ویل هغه وخت کې کیږي چې ته جهر وکړي نه اسرار د اسرار په وخت کې نه تا ته څوک لیوني وایي نه ریاء کار ·

(۹) دلیل : دارنګې مسند احمد بن حنبل جلد ۳ صفحه ۱۴۲ :

حدثنا عبدالله حدثني ابي حدثنا محمد بن بکر اخبرنا میمون المرائي حدثنا میمون بن سیاه عن انس بن مالك عن رسول الله ﷺ قال ما من قوم اجتمعوا . نشته یو قوم چې را غونډ شي ·

یذکرون الله . د الله ذکر کوي ·

لا یریدون بذلك . مقصد په دې سره نه وي ·

الا وجهه . مګر رضا د باري تعالی ·

الا ناداهم مناد . اواز کوونکې اواز ورته کوي :

من السماء . له اسمان نه .

أن قوموا مغفورا لکم . پاڅي مجلس نه بخښنه درته شوې ده .

قد بُدلت سيئاتکم حسنات . ستاسو سيئات په حسناتو بدلې شوې .

داد اجتماعي ذکر دليل دي چې په جمعه او حلقه کې ذکر دا جائز دي ، ډير حمقاء دا خبره کوي چې مسجد ته ځي او د ذکر حلقې ته ځي خدای په کور کې يادوه حلقې ته څه ته ځي نو دا روايات د هغه اجتماعي ذکر فضيلت ثابتوي يو ځای کې ذاکرين را غونډ دي د هغوي حلقه کې کيناستل افضل دي .

(۱۰) دليل : دارنګې صحيح ابن حبان جلد ۳ صفحه ۹۸ :

اخبرنا عمر بن محمد الهمداني قال حدثنا ابوطاهر قال حدثنا ابن وهب قال اخبرني عمرو بن الحارث عن دراج أبي السمح عن أبي الهيثم عن أبي سعيد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال يقول الله جل وعلا .

ورځ د قيامت کې به د اله العالمين لخوا نه اعلان کيږي :

سيعلم اهل الجمع اليوم من اهل الکرم . د حشر د ميدان د جمعې مخلوق چې څومره دي دوي به زر دي نن پوه شي .

مَن اهل الکرم . اهل د عزت څوک دي .

فقيل . چا وويل نبي عليه السلام ته .

من اهل الکرم يا رسول الله ؟ قيامت کې خو به اعلان وشي نبي عليه السلام يې حکايت کړې اعلان به وشي چې اهل د عزت څوک دي خلک به يې وپيژني ، صحابه وو کې چا عرض وکړو :

من اهل الکرم يا رسول الله صلى الله عليه وسلم قال أهل مجالس الذکر في المساجد . دا هغه خلک دي چې په مساجدو کې ذکرونه کوي دا اهل الکرم دي .

امام سيوطي رَحِمَهُ اللهُ عجيب محدث دي اخذ كوي بعيد محدث دي مجتهد نه دي فقيه هم دي كوم محدث چې فقيه وي د هغه ذهن ډير كار كوي مسئله ډير ژور ځاى نه را اوباسي اوس دا دوه دري احاديث يې را اخيستي دي دې نه هم جهر ثابتوي .

(۱۱) دليل : العظمة د ابو الشيخ اصبهاني جلد ۵ صفحه ۱۷۱۷ :

حدثنا محمد بن عبدالله بن مصعب حدثنا ابن ابي عمر حدثنا سفيان عن مسعر عن عون بن عبدالله رَحِمَهُ اللهُ تعالى قال ان الجبل . غر .

لينادي الجبل . دې بل غره ته آواز كوي .

باسمه . په نوم سره .

يا فلان . اي فلاني غره .

هل مر بك اليوم لله ذاكر . نن ورځ په تا باندې د خداى تعالى ذاكر تير شوې دي .

فان قال نعم . كه هغه ووايي چې هاو تير شوې دي .

استبشر . نو زيرې وركړي دا غر هغه ته زيرې وركړې چې زيرې قبول كړه چې په تا هم نن ذاكر تير شوې دي نو بيا عون بن عبدالله د تائيد لپاره چې ځوك وايي دا چيرته كيدې شي چې غر دې غر ته خبرې وكړي دا ايات ولوستلو :

﴿تَكَادُ السَّمَاوَاتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ﴾ . داسې غلطه خبره كوي مشركينو قريب دي چې اسمانونه ترې تيوته شي .

وقال أيسمعون الزور ولا يسمعون الخير . نو دا كيدې شي چې الزور دي اوري او غير ددې نه دي نه اوري چې هر كله د هغوي شرک اوري او قريب دي چې اسمان يا غر ترې تيوته كيږي نو د غه شان ذكر د خير او د الله هم اوري او په هغې دوي خوشحاليږي .

(۱۲) دليل :

اخرج ابن جرير في تفسيره عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ في قوله فما بكت عليهم السماء والارض . اسمان او ځمكې په دوي ژړا ونه كړه .

قال : وايي .

ان المؤمن اذا مات بكى عليه من الارض . نو ځمکه پرې ژاړي .

الموضع الذي كان يصلي فيه ويذكر الله فيه . هغه دوه ځايونه پرې ژاړي په كوم ځاى چې مونځ كړي او په كوم ځاى چې د الله ذكر كړي .

و اخرج ابن ابي الدنيا عن ابي عبيد قال ان المؤمن اذا مات نادت بقاع الارض . دا ټوټه د ځمکي چغې کړي .

عبدالله المؤمن مات فتبكي عليه الارض والسماء . ټول پرې ژاړي .

فيقول الرحمن ما يبكيكما على عبدي؟ آسمانونو او ځمکو زما په دې بنده څه شي وژړولې .

فيقول ربنا لم يمش في ناحية مناقط الاهو يذكرك . زمونږ په دې ساحه يو ځاى كې به يو هم روان نه وه مګر ستا ذكر به يې كوه دا خو اجتماعي ذكر نه دي انفرادي دي اوس سيوطي رَحِمَهُ اللهُ دې نه جهر ثابتوي .

الحاوي للفتاوى جلد ۱ صفحه ۳۷۷ وجه الدلالة من ذلك ان سماع الجبال والارض للذكر لا يكون الا عن الجهر به. وايي كه دې پټ لګيا وايي غرونو څه واوريده ځمکي څه اوريده دا سماع د ځمکي او غرونو دې ذكر له دليل د جهر دي چې داده په زوره ذكر كړې دي .

مسند ابن الجعد جلد ۱ صفحه ۲۵۳ د محمد رَحِمَهُ اللهُ قول پيش كوي :

كان محمداً يقوم من الليل فيتوضأ ثم يدعو فيحمد الله عزوجل ويثني عليه ويشكر له يرفع صوته بالذكر . د شپې به يې په زوره ذكر كولو .

فقيل له لم ترفع صوتك؟ چا ورته وويل ولې اوچتوي آواز په ذكر باندې يعني په زوره ذكر ولې كوي .

قال ان جاراً لي اشتكى فرفع صوته بالوجع وانا ارفع صوتي بالنعمة . وايي زما ګاونډي دي هغه مريض شوې دي نو هغه په درد سره چغې وهي نو په هغې كې ناشكري د خالق ده بس ما وويل راځه ګاونډي دي د ناشكري چغې وهي ته ذكر باندې چغې ووهه چې دا په نعمت باندې خوشحاليده .

ددې نه بعد د محدثينو عبارت او تطبيقات او بعضې نصوص چې مخالفين ترې نه استدلال كوي د هغې جوابات مذكور دي .

فيض الباري شرح صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۲۳۹ : انا عند ظن عبدي بي الخ ،
ديكې دې خبرې كوي چې چا دلته دا ثابته كړې چې په زوره ذكر بهتر دي چا دا ثابته كړې چې خفي ذكر بهتر دي دې وايي دا حديث دې نه ساكت دي البته د اجتماع د ذكر دليل دي جانبين دې ترې اخذ نه كوي .

## بحث الناس فيه ان الذكر بالجهر افضل او بالسر ؟

په زوره بهتر دي كه پټ بهتر دي دروا او ناروا خبره نه كوي د بهترې خبره كوي :

قلت : وهذا البحث في غير موضعه بل تخليط للمراد فان الحديث ناطق بأن الله تعالى يعامل كلاً بحسب ظنه فليس فيه الا الجزاء من جنس العمل فمن ذكره في ملأ يذكره في ملأ عنده لانه جزاء عمله وكذا من ذكره في نفسه يذكره في نفسه لانه جزاء يوازي عمله فلا تعرض فيه الى الافضلية .

دې كې د افضل د جهر او افضل د سر څه مسئله نشته .

مشكوة المصابيح مع شرحه مرقاة المفاتيح جلد ۷ صفحه ۷۷۱ : وان ذكرني في ملأ . له دې نه د جهر اثبات كوي هغه وايي :

وفيه دليل على جواز الذكر بالجهر . ده په زوره ذكر جواز ترې ثابتيږي .

واختلفوا في ذلك . دې كې علماء مختلف دي .

فمنهم من منعه مطلقاً . چا مطلقاً منعه كړې ده .

ومنهم من جوزه مطلقاً . چا مطلقاً جائز كړې ده .

ومنهم من فصل كصاحب الفتاوى الخيرية . تفصيل يې كړې دي كه نائم مصلي مريض وغيره لره تكليف وه نه دې كوي كه نه وه جائز شو .

الفتاوى الفقهية الكبرى د ابن حجر هيتمي جلد ۱ صفحه ۱۷۶:

وسُئل رضي الله عنه عما اعتاده الصوفية . هغه چې صوفيانو عادت جوړ کړي .

من عقد حِلَق الذكر والجهر به في المساجد .د ذکر حلقې جوړوي او جهر پرې کوي په مساجدو کې .

هل فيه كراهة . په دې کې کراهت شته .

فاجاب بقوله : لا كراهة فيه . جواب يې ورکړو په دې قول سره چې : کراهت نشته دي په کې .

وقد جمع بين احاديث اقتضت طلب الجهر .لكه : وان ذكرني في ملأٍ ذكرته في ملأٍ خير منهم .

رواه البخاري ، دا مقتضی د جهر دي .

والذي في الملأ لا يكون الا عن جهر وكذا حلق الذكر و طواف الملائكة بها وما فيها من الاحاديث فان ذلك كله انما يكون في الجهر بالذكر . دا ټول دال په جهر ذکر باندې دي .

واخرج البيهقي مر برجل يرفع صوته قلت يا رسول الله ﷺ عسى ان يكون هذا مرائياً . دا به ریا کاروي لکه مخکې تیر شو .

قال لا ولكنه اواه .

نو څه احاديث د جهر مقتضي دي هغه دادی :

واخرى . څه نور روايات .

اقتضت طلب الاسرار . د پټ ذکر مقتضی دي .

بان ذلك يختلف باختلاف الاشخاص والاحوال كما جمع النووي رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ بذلك بين الأحاديث الطالبة للجهر بالقراءة والطالبة للإسرار بها فحينئذ لا كراهة في الجهر بالذكر البتة حيث لا معارض بل فيها ما يدل على استحبابه . معارض نشته بلکې په دې کې هغه روايات دي چې دليل د استحباب د جهر دي .

اما صريحاً او التزاماً . يا صريحاً يا التزاماً .

ولا يعارض ذلك خير الذكر الخفي. دا معارض د هغه حديث نه شو چې خير الذکر الخفي، غوره ذکر خفي دي.

كما لا يعارض احاديث الجهر بالقران بخبر السر بالقرآن كالسر بالصدقة. اسرار په صدقه راغلي په جهر هم جائز ده.

﴿إِن تُبْدُواْ الصَّدَقَاتِ فَنِعِمَّا هِيَ﴾ نو خيرا لكم خو دليل د نفي د جهر نه شو چې په ښکاره باندې ګني نا روا دي که ريا راتله هغه خو خارجي علت شو.

وقد جمع النووي بينهما بان الاخفاء افضل حيث خاف الرياء او تأذى به مصلون او نيام.

والجهر افضل في غير ذلك لان العمل فيه اكثر ولان فائدته تتعدى للسامعين ولانه يوقظ قلب القاري ويجمع همه الى الفكر ويصرف سمعه اليه ويطرد النوم ويزيد النشاط فكذلك الذكر. دا خو د تلاوت متعلق وه دغه شان ذکر هم دي، على هذا التفصيل.

او هر چې دا آيت دي: ﴿وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ. الآية﴾

اجيب عنه. دې وايي زه جواب ترې کوم.

بانها مكية. دا آيت مکي دي.

كاية الاسراء. په شان د ايات د سورة اسراء چې:

﴿وَلاَ تَجْهَرْ بِصَلاَتِكَ وَلاَ تُخَافِتْ بِهَا﴾ وقد نزلت.

دا نازل شوې دي په هغه وخت کې:

حين كان صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يجهر بالقرآن. هغه به قرآن کريم کې جهر کوه.

فيسمعه المشركون. مشرکينو به اوريدلو.

فيسبون القرآن. کنځل به يې کول قرآن کريم لره.

ومن انزله. هغه ته به يې کنځل کول نو مامور شو په ترک الجهر باندې سداً للذريعة.

نو واذكر ربك في نفسك. تلاوت ته اشاره ده چې ته تلاوت پټ کوه.

كما نهى عن سب الاصنام. لکه د کنځلو د بتانو نه منع شوې وه.

وقد زال هذا المعنى اشار لذلك ابن كثير في تفسيره .

نتيجة الفكر في الجهر بالذكر د سيوطي رَحِمَهُ اللَّهُ جلد ۱ صفحه ٦ كې ذكر كوي :

﴿وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعاً وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ﴾ قلت . زه وايمه .

الجواب عن هذه الايات من ثلاثة اوجه : الاول : انها مكية كآية الاسراء : ﴿وَلاَ تَجْهَرْ بِصَلاَتِكَ وَلاَ تُخَافِتْ بِهَا﴾ وقد نزلت حين كان النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يجهر بالقرآن فيسمعه المشركون فيسبون القرآن ومن انزله فامر بترك الجهر سداً للذريعة كما نهى عن سب الاصنام لذلك في قوله تعالى : ﴿وَلاَ تَسُبُّواْ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللهِ فَيَسُبُّواْ اللهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾

دغه شان دلته منع شوې وه په مدينه منوره کې دا حکم نه دي پاتې ختم شوې دي .

الثاني : ان جماعة من المفسرين منهم عبدالرحمن بن زيد بن أسلم شيخ مالك وابن جرير حملوا الاية . حمل كړې دا ايات .

على الذاكر حال قراءة القرآن . كله چې تلاوت كيږي دغه وخت کې پټ ذکر کوه .

وانه امر له بالذكر على هذه الصفة تعظيماً للقران ان ترفع عنده الاصوات ويقويه . او مقوي ده دغه دويم تاويل اتصال ددې ايات دي دې ايات پورې :

﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُواْ لَهُ وَأَنصِتُواْ﴾ دا يې دې پورې متصل کړې دي وايي دا اتصال يې ددې دليل دي چې دغه تاويل ته ترجيح ورکوي .

الثالث : ما ذكره الصوفية أن الأمر في الآية خاص بالنبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الكامل المكمل واما غيره ممن هو محل الوساوس والخواطر الردية فمأمور بالجهر لانه اشد تأثيراً في دفعها .

په دفع د وساوسو کې په ذکرِ جهري کې تاثير زيات دي نو دا وايي په حق د کملو کيدي واذكر ربك دا وايي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته خطاب دي يا هغه خلكو ته دا خطاب دي

چې له کاملينو نه وګرځيږي چې هغه ته د وساوسو خطره نه وي او چې چا ته دا خطره وي او غفلت پرې راځي نشاط ختم وي ذوق ختم وي هغه بيا مامور دي په جهر باندې .

قلت : سيوطي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي :

ویؤیده من الحدیث ما اخرجه البزار عن معاذ بن جبل . وایي دي حدیث ته گوره همدغه تائید ثابتیږي .

قال رسول الله ﷺ من صلی منکم باللیل فلیجهر بقراءته . د شپې چې څوک لمونځ کوي قراءت په جهر کوي .

فان الملائکة تصلي بصلاته . ستا د مونځ سره فرشتې لمونځ کوي .

وتسمع لقراءته وان مؤمني الجن الذین یکونون في الهواء . مؤمنان د پیریانو چې کوم په هوا دي .

وجیرانه معه في مسکنه . دلته چې کوم اوسیږي .

یصلون بصلاته ویستمعون قراءته . وأنه دي چې دې .یطرد . شړي .

بجهره بقراءته عن داره و عن الدور التي حوله فساق الجن و مردة الشیاطین . په جهري تلاوت سره د خپل کور او د ګاونډیانو نه فساق د جن ومردة الشیاطین شړي دې نه اخذ کوي چې په ذکرِ جهري کې د شیاطینو شړل شته نشاط شته د وساوسو ختمیدل شته .

نتیجة الفکر في الجهر بالذکر جلد ۱ صفحه ۸ کې به تاسو یو روایت پیدا کړي په تفاسیرو کې د سند په لحاظ سره ضعیف دي چې عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه مسجد ته راغې مختلف روایات دي په کې یو په کې دادې چې هغوي ذکر په زوره کولو او ده ورت، وویل :

هؤلاء مبتدعین .

بل روایت داسې راځي چې هغوي په کاڼو باندې ذکر کولو وایي دا څه شي کوي دې باندې وایي مونږ حسنات شمارو په دې باندې وایي تاسو ته پته نشته چې سیئات شماري په یو یو کاڼي سره سیئات شماري صحابوو داسې نه کول ختم خواجګان باندې رد راغلو دغه شان متضاد روایات ابن مسعود رضي الله عنه نه دي خو د سند په لحاظ سره قوي نه دي ضعیف دي نو سیوطي رحمه الله په دغه مذکوره صفحه باندې جواب ورکوي .

ثم رأیت ما یقتضي انکار ذلك عن ابن مسعود . ما هغه روایات ولیدل چې مقتضي د انکار د ابن مسعود دې له ذکرِ نه او له حلقو د ذکر نه نو جواب کوي په معارضې سره .

قال الامام احمد بن حنبل في كتاب الزهد حدثنا حسين ابن محمد حدثنا المسعودي عن عامر بن شقيق عن ابي وائل قال هؤلاء الذين يزعمون. داخلک داسې گمان کوي.

ان عبدالله كان ينهى عن الذكر. عبد الله بن مسعود خلک د ذکر نه منع کول:

ليكن ما جلست عبدالله مجلساً قط. زه د عبد الله سره کله هم ناست نه يم.

الا ذكر الله فيه. مگر ذکر به کړې دي. سيوطي رَحِمَهُ اللهُ دا دې لپاره پيش کوي چې دغه روايات د سند په لحاظ د هغې په مقابله کې قوي دي چې څوک يې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه په رد د ذاکرينو د حلقې باندې پيش کوي بل هلته ابو موسى اشعري او عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغه ضعيف روايت کې هم نسبت ددې کوي چې دا تاسو گناه شماري او ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وايي چې والله انه لخير. قسم بالله دا خو خير دي نو دې ځاى کې چې د ابن مسعود عمل نه دين جوړوي داد دويم صحابي ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې په قسم سره دې کار ته د خير نسبت کوي هغې نه ولې استدلال نه کوي.

او يا يې تطبيق وکړو نو تطبيق يې داسې چې د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حال دې حمل شي په اخص الخواصو باندې اخص الخواص څوک دي اخص الخواص هغه دي چې مأمورات د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټول په ځاى راوړي افعال يې په ځاى راوړي منهياتو نه يې منع شي بيا دويمه مرتبه کې چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په کوم رواياتو کې صحابه وو په روايت العدم کې پيش کړي چې دا کارې نه دي کړې د هغې نه اجتناب وکړي بيا دريمه مرتبه کې چې کومو رواياتو کې سکوت راغلې دي بالکلية هغه شي ثابت نه وي نو هغه شي نه هم دې ځان وساتي.

امام رباني رَحِمَهُ اللهُ چونکې د اخص الخواصو نه دي هغه وايي په بدعت حسن کې هم نور نشته دي نو داد اخص الخواصو کار دي چې هغه بايد دومره متبع د سنتو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ شي لکه امام رباني رَحِمَهُ اللهُ چې کوم کار هغه نه وي کړې نو هغې ته هم بيا ونخلي هغې نه هم ځان وساتي چې کوم يې نه وي کړي او چې تا ۶۰۰ سنت د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په صحيح احاديثو ثابت هغه درنه پاتې دي او يو کار را پيدا شي هلکه دا يې نه دي کړې زه يې نه کومه هغه خو وروستي رتبه ده هغه کوم يې چې کړي هغه خو خپل کړه يو ځل بيا وروسته دې ته راشه چې دا

کاريې نه دي کړي زه يې نه کومه دا خو روستي خبره ده د کملو کار دي د کمال مجتنبينو د بدعت نه کار دي چې هم حسن نه ځان ساتي هم سيئه نه ځان ساتي دا داخص الخواصو کار دي.

نو عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د هغه اخص الخواص نه دي چې هغه فعلي سنت د نبي عليه السلام يې تږول په ځای راوړې دي دې نه بعد دويمه رتبه کې يې شروع کړې ده چې دا کار يې نه دي کړې زه يې نه کومه هغه په دې مقام کې دي او د ابو موسی اشعري رضي الله عنه فتوی عامه ده.

والله انه لخير. دا کار ښه کار دي د خدای ثناء وايي تسبحيات وايي تهليلات وايي که په کانړو يې شماري که په هر شي باندې شماري هغه د کانړو شمارل هم د نبي عليه السلام په زمانه کې موجود وه ابو داؤد شريف باب الذکر بالحساب باب لړولې دي نبي عليه السلام يو بي بي باندې راغې او هغې د کهجورو زړي راټول کړې وه په هغې لګيا وه تسبيحات يې وويل نبي عليه السلام منع و نه کړه چې دا کار بدعت دي يا څه جرم دي بلکې دا الفاظ يې وويل چې داسې يو څيز و ښائم درته چې هغه جامع د ډيرو اذکارو وي په هغې کې ډير اجر وي بيا يې څه خصوصي الفاظ ورته و ښودل چې بي بي غريبې ځان ډير ستړې کړې دي او د غه الفاظو کې ثواب ډير دي که دا چيرته نار وا واي نو دا ښځه به يې منع کړې وي د زړو د ذکر نه.

نو د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه دا قول خو ضعيف دي سنداً که قوي هم شي هغه د اخص الخواص سره لږيږي زمونږ او تاسو کې تاسو يې که زه يم که خاصکر پنجپيريان دي دوي دې را واخلي يو اځې بخاري دې اول نه آخره پورې وګوري چې دوي نه څومره مامورات د نبي عليه السلام ترک شوې دي څومره افعال هغه کړې دوي په ځای نه دې راوړي څومره تقريراتو باندې ثابت څيزونه دي دوي پرې قول نه دي کړې.

دا خو بيا وروستي خبره ده چې دا کاريې نه دې کړي زه يې نه کومه دا خو وروسته خبره ده هغه کوم امر يې نه دې کړي زه يې نه کومه دا خو وروسته خبره ده هغه کوم امر يې چې کړې هغه په ځای راوړه نو قول د ابن مسعود رضي الله عنه دې اخص الخواصو سره ولږيږي چې بدعت کې نو ر نشته که حسن وي که سيئه وي بايد اجتناب ترې وشي او قول د ابو موسی اشعري رضي الله عنه دې عامه فتوی شي:

انه لخير. داد خير عمل دي.

عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فقاهت به مني فقه د هغه خپل مقام لري ليكن څو ځيزونو دي يو په فن د قرائت کې دده قرائت بيا د متواترو نه ، نه دي او د قرائت په باب کې چونکې دې عالم وه دا علماء اكثر قرآن كريم يې پوخ نه وي روايت بالمعنى ډير كوي دا عالمان چې كوم قاريان وي تاسې يې قرائت واوري ډيرو ځايونو کې متشابه ته چې لاړ شي په معنى يې جوړوي بيا هغه معنى ته ګوري بس جوړوي .

نو دغه شان ده نه هم ډيرو ځايونو کې روايات بالمعنى شوې دي نو امت يې نه قبلوي د قرائت په باب کې قرائت شاذه لري متواتره نه دي او بيا نور څه تفردات هم لري چې امت هغې کې ده پسې ذهاب نه كوي من جمله د هغې نه چې مونږ ركوع كوو نو زنګون نيسو څلور واړه مذاهب متفق دي په نيولو د زنګون باندې او عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نه افضل دادى چې د دواړو پتونانو مينځ کې به لاس ومنډي او وه به يې نيسي د هغه دومره سخته ركوع ده چې ډيره ګرانه ده .

داد ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رايه ده او داد دده تفرد دي امت کې څوک ذهاب نه كوي ابتداء کې دا عمل وه خو بيا منسوخ شوې دي او عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي منسوخ نه دي هغه افضله ده او دا جائزه ده چې مونږ يې كوو خو هغه چونكې ګرانه ده چا پرې عمل نه شو كولې .

ددې نه بعد به د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ قول ډيرو طالبانو ته شكوک پيدا كړې وي چې هدايه وغيره را اخيستې ده :

**ان الجهر بالذكر بدعة يا ان الجهر بالتكبير بدعة** دا عبارت زمونږ په فقه کې پيدا كيږي نو په هغې باندې هم لږ ځان پوه كړي امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ فقيه دې هغه خبرې د اصولو موافق كړې دي دا چې اوس خلک د هغه په خبرو نه پوهيږي بل شي ترې جوړوي داد خلكو نقصان دي .

امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وايي كوم اعمال چې دين کې معروف دي مثلاً طواف مثلاً مونځ يا عيدين دا خپل احكام لري خپل اصول لري خپل چوكاټ لري د خارج نه چې كوم شي ثابت نه وي ته يې په دې کې داخلولې نه شي همدا وجه ده چې حجر اسود او ركن يماني په طواف کې مس كولې شي .

زمونږ احناف وايي که رکن عراقي او شامي دې مس کړو نو مکروه دي وايي دا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دي مس کړي هغه حديث د بخاري د معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شته دي چې هغه به عراقي او شامي دواړه مسحه کول ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پرې اعتراض هم کړې وه چې دا ته څه کوې هغه ورته وويل:

لم يكن في البيت شيء مهجور . په بيت کې يو کوږ هم مهجور نه دي هريو د برکت نه ډک دي زه يې مس کولې شم .

د يو صحابي رايه هم پرې شته بيا هم زمونږ فقهاء وايي مکروه دي ولې وايي هغه ځکه وايي چې دا طواف زمونږ په دين کې يو حکم دي يو عمل دي دا حدود لري دا احکامات لري ددې په داخل کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کوم کار ثابت نه وي زائد څوک نه شي زياتولې نو په حالت د طواف کې د رکن عراقي او شامي مس د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ثابت نه دي نو مکروه دي بيا چې کله دې طواف خلاص کړو نو بيا خو د کعبې دا څلور رکنونه پريږده هسې ديوال ته يې لاس وړه باب ته يې لاس وړه .

دا تا ته وايي نه چې کله دې طواف خلاص کړو بيا به ملتزم ته لاړ شي هغه درشل د کعبې پورې به کلک ونخلي بيا خو جائز دي خو صرف په عمره او حج کې چې دا اعمال دي احکام دي حدود لري احکامات لري امرِ زائد دې کې دننه کول زمونږ اصول نه مني .

نو دغه شان دا عيد چې دې دا احکامات لري د عيد په احکاماتو کې دا دی چې په لوی اختر کې به چې کله روان عيدګاه ته يې نو جهر به په تکبير باندې کوي امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې هر کله وړوکي اختر راشي نو دواړه اختر په احکاماتو کې جهر بالتکبير په طريق کې نشته ځکه دا ثابت نه دي نو هغه لان الجهر بالتکبير بدعة يا بالذکر بدعة دغه ځای کې يادوي .

لان الجهر بالتكبير بدعة في الطريق الى المصلیٰ في يوم الفطر . په ورځ د واړه اختر چې عيدګاه ته ځې په دې لاره جهر بالتکبير بدعت دي يا مکروه دي ولې وايي ځکه دا د احکامو د عيد نه ، نه دي عيد يو عمل دي چو کاټ لري حدود لري احکام لري دواړه اختر احکامو کې جهر بالتکبير نه دي راغلې چې نه دي راغلې نو ته د ځان نه يو حکم په کې نه شي دننه کولې

دې ته جائز مه وايه او ياران څه وايي قياس دې وشي غټ اختر باندې هغلته جائز دلته هم جائز نو زما دغو عباراتو ته فقهاء اشارات کړې دي.

البحر الرائق شرح کنز الدقائق جلد ۵ صفحه ۲۱۱ : ولا يكبر في طريق المصلى عند ابي حنيفة رَحِمَهُ اللهُ. واړه اختر کې تکبيرات به نه وايي په لاره په نزد د امام صاحب باندې ولې.

اى حكماً للعيد. چې داد عيد له احکامو نه وګرځيږي په دغه نيت به يې نه وايي.

ولكن لو كبر لانه ذكر الله تعالى يجوز ويستحب. که دې الله اکبر وايي په واړه اختر کې په لاره او د احکام العيد نه يې نه ګرځوي نو بيا مستحب عمل دی دا عبارت ثابتوي چې امامنا دا قول د مکروه چې کړې دي داد احکام العيد باره کې وايي چې داد واړه اختر له احکامو نه مه ګرځوي لکه خطبه يې د احکامو نه ده د خطبې سماع يې له احکامو نه ده تکبيرات يې له احکامو نه دي.

دغه شان په دې طريق کې تکبيرات په لوی اختر کې له احکام العيد نه دي او په واړه اختر کې له احکام العيد نه، نه دي هغه د خپلو اصولو موافق صحيح خبره کوي چې واړه اختر کې دا نه دي ثابت نو داد حکامو نه مه ګرځوي.

دا رنګې تبيين الحقائق شرح کنز الدقائق جلد ۳ صفحه ۹۹، امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ وايي زمونږ زمانه کې عام خلک د واړه اختر کې په دې تکبيراتو اخته دي جهر پرې کوي په زوره يې وايي وايي زما دا فيصله ده چې خلک مه منع کوي خلک هسې هم نيکي نه کوي دغه څه نيکي يې شروع کړې هغه پرې تاسو بند کړې هغه د يارانو مذهب ته يې ترجيح ورکړې چې واړه اختر کې دې هم روان وي په لاره جهر دې کوي.

قال الطحاوي : والذي عندنا. هغه چې زما په نزد فيصله ده هغه داده :

انه لا ينبغي. مناسب نه ده.

ان يمنع العامة. چې منع کړې شي عام خلک.

من ذلك. له ذکرِ جهري نه.

لقلة رغبتهم في الخيرات. د خلکو په نيکي کې رغبتونه کم شوي دې دغه لږې لږې نيکي

يې شروع کړې دي او په دې کې ته ورته خبرې پيدا کړې چې دا دې بدعت وکړو نو خلک به بالکلية د اعمالو نه واړوي لکه خيراتونه دا خلک چيرته کوي خو چيرته دا يو نيم خيرات وکړي هغه پرې ته بند کړي نور خيرات خو هسې هم نه کوي هغه پرې ته بند کړي د خير اجتماعات خو نه لري چيرته د ميلاد په نوم را غونډ شي د خدای د دين خبرې اوري هغه پرې ته بند کړي نو وايي رغبتونه خيراتونو ته کم دي اذکار او عبادات کم شوي دي نو دغه يوه نيمه ورځ چې خلک دا کار کوي نو منع کول يې نه دي په کار .

قال وبه نأخذ . مونږ په دې اخذ کوو داد يارانو فتوی هم ده .

وفي الفتاوى الظهيرية وعن الفقيه ابي جعفر انه يقول سمعت ان مشائخنا كانوا يرون التكبير في الاسواق في الايام العشر . زمونږ مشائخو جائز کړل تکبيرونه په بازارونو کې په ورځو ۱۰ کې .

وفي المجتبى وذكر ابو الليث ان ابراهيم بن يوسف كان يفتي بالتكبير في الاسواق في الايام العشر قال الهندواني وعندي . زما په نزد .

لا ينبغي ان تمنع العامة من ذلك . نه ده مناسب چې عام خلک له دې نه منع شي .

لقلة رغبتهم في الخيرات وبه نأخذ هذا في جمع التفاريق . مختلف اقوال راغلي د هغې جمع په دې کې شوه .

قيل لابي حنيفة رَحِمَهُ اللَّهُ ينبغي لاهل الكوفة وغيرها . کوفې او غيرِ کوفې خلکو ته په کار دي .

ان يكبروا ايام التشريق في الاسواق والمساجد . په ايامو تشريق کې به بازارونو او په مسجدونو کې تکبيرونه وايي .

قال نعم . وايي هاو په کار ده چې وي وايي .

په اخره کې د شامي عبارت زه تاسو ته ذکر کوم چې شامي دا ټول عبارات را اخيستي او نچوړ يې ترې راويستلي دي رد المختار جلد ۱ صفحه ۶۶۰ : مطلب في رفع الصوت بالذكر

اقول اضطرب كلام صاحب البزازية في ذلك . وايي صاحب د بزازي دې باره کې مضطرب اقوال کړي .

فتارةً قال . کله وايي .

انه حرام . په زوره ذکر حرام دي .

وتارة انه جائز . کله وايي دا جائز دي .

وفي الفتاوى الخيرية من الكراهية والاستحسان جاء في الحديث . هغې کې د کراهيت قول دي .

علامه شامي وايي استحسانيه په کې داده : جاء في الحديث ما اقتضى طلب الجهر به ، احاديثو کې داسې روايات شته چې مقتضي د جهر دي هغه دا :

وان ذكرني في ملإ ذكرته في ملإ خير منهم رواه الشيخان وهناك احاديث . دلته نور احاديث دي چې مقتضي طلب د اسرار دي .

والجمع بينهما بان ذلك يختلف باختلاف الاشخاص والاحوال كما جمع بذلك بين احاديث الجهر والاخفاء بالقراءة .

ولا يعارض ذلك حديث خير الذكر الخفي لانه حيث خيف الرياء او تأذي المصلين او النيام فان خلا مما ذكر . که ددې نه خالي وه دغه ځای .

فقال بعض اهل العلم ان الجهر افضل لانه اكثر عملاً ولتعدي فائدته الى السامعين ويوقظ قلب الذاكر فيجمع همه الى الفكر ويصرف سمعه اليه ويطرد النوم ويزيد النشاط .

بيا وايي :

وفي حاشية الحموي عن الامام الشعراني اجمع العلماء سلفاً وخلفاً . علماء پخواني او وروستني اجماع يې کړې ده .

على استحباب ذكر الجماعة في المساجد وغيرها . په مساجدو کې په زوره ذکر باندې وغيرها .

الا ان يشوش جهرهم . مگر که تشويش کې اچوي جهر د دوي .

على نائم او مصل او قاريء . هغه وخت کې بيا نه دي په کار .

بغية المسترشدين د شافعي فقهي کتاب دي جلد ۱ صفحه ۱۳۳، ذکر کوي :

لا يكره في المسجد الجهر بالذكر بأنواعه .

خو مره قسم ذکر چې وي هغه په مسجد کې جهر په هغې د مکروهاتو نه ، نه دي بهر حال کيدې شي ډير فقهاء تاسو داسې هم پيدا کړي چې نسبت د کراهيت يې کړې وي خو نچوړ د هغې دا دی چې کوم اقوالو کې کراهيت دي هغه دې حمل شي تر بعض الاشخاص او هغه دې حمل شي تر بعض المواضع چې مصلي نائم بيمار تالي طالب هغوي ته پرې ضرر نه وي کومو روایاتو کې چې جواز راغې هغه ما خلاد دغو مواضعو نه شو .

مسئله د ذکر بالجهر د لوي څښتن په مرسته خلاصه شوه .

